پنجشنبه ۱۳٦٤ کال
دحمل ۲۹
April 18, 1985
پنځم کال ۱۹۳ ګڼه
پرله‌پسی ګڼه ۱۱۰٦
دتاسیس کال ۱۳۵۹

# د ثور دانقلاب حقیقت



دافغانستان دخلک دیموکراتیک ګوند د مرکزی کمیتی ارګان

# دلویی جرګی لپاره دخلکو داستازو ټاکل

## زموږ هیوادوال په شور اوزوږ سره ددغه ملی ویاړلی دود هرکلی کوی

د لویی جرګی د انتخاباتو او جوړیدو د سازمان ورکولو د عالی کمیسیون د رپوټ له مخی په لویه جرګه کی زموږ په انقلابی هیواد کی په دغه ستره تاریخی پیښه کی د ګډون له پاره د خلکو د استازیو ټاکل روان دی.

زموږ هیواد پال خلک په انقلابی مینی او ولولو سره د ا.د.ج د انقلابی شورا د ۱۳٦٤ کال د حمل د میاشتی د اوولسمی نیټی د فرمان په رڼا کی په لویه جرګه کی د ګډون په خاطر خپل ډیر ښه استازی ټاکی او له دغی ستری تاریخی جرګی سره د هر کلی په غونډو او مارشونو سره د لویی جرګی جوړیدو او د خلکو پخوانی او لرغونی دود ته ددرناوی په خاطر د خپل ګوند او وګړنیز دولت له سیاست سره خپل غوڅ ملاتړ څرګندوی.

### *کندهار

د لویی جرګی د جوړیدو په باب د ا.د.ج د انقلابی شورا د ۱۳٦٤ کال د حمل د میاشتی د اوولسمی نیټی د فرمان له مخی د کندهار ولایت د قومونو او قبایلو او دبیلابیلو ملیتو نواستازیو عالمانو، روحانیونو، کارګرانو، بزګرانو او دټولنیزو سازمانونو د ولایتی پراخی جرګی په ترڅ کی په لویه جرګه کی د ګډون له پاره چی په کابل کی جوړیږی خپل استازی په آزاده او دموکراتیکه فضا کی وټاکل.

د ولایتی جرګی په پیل کی د قرآنکریم څو آیتونه ولوستل شول، ورپسی د ا.خ.د.ګ د مرکزی کمیتی غړی او د انقلابی شورا مرستیال ملګری عبدالرشید آرین د لویو جرګو په تاریخی اهمیت باندی رڼا واچوله او د ا.د.ج دانقلابی شورا د ۱۳٦٤ کال د حمل د میاشتی د اوولسمی نیټی د فرمان متن د جنوب زون آمر برید جنرال محمدحکیم ولوست ورپسی مولوی ګل محمد، حاجی نصرالله او احمد شاه د ولایتی جرګی د برخه والو په نمایندګی په حپلو ویناوو کی د لویی جرګی د جوړیدو په باب د انقلابی شورا د حمل دمیاشتی د اوولسمی نیټی د فرمان هر کلی وکړ ویی ویل زموږ ګوند او انقلابی دولت د خلکو ارادی، غوښتنی او رای ته زیات ارزښت ورکړی او هغو ته درناوی کوی. د لویی جرګی جوړیدل زموږ د ګوند او انقلابی دولت د وګړنی سیاست ښکارندوی او د هغو د ملی او وګړنی خصلت ممثل دی.

د کندهار ولایت له مرکز او مربوطاتو څخه اتیا تنه دهغه ولایت د استازیو په توګه د رایو په اتفاق په لویه جرګه کی د ګډون له پاره وټاکل شول.

جرګه د آزاد او خپلواک افغانستان د ترقی او لوړتیا او د ا.خ.د.ګ په مشری د هیواد دسرتر سری سولی په دعا پای ته ورسیده.

### *پکتیکا

د یوه بل رپوټ له مخی د پکتیکا ولایت د بیلابیلو

دوهم مخ

# دانقلاب، کالیزه، چمتووالی





دکور جوړولو دفابریکی کارګرانو دانقلاب په کلونوکی پخپل پرله‌پسی کار او هاند سره په مکروریانو کی دری زره دری سوه څلویښت اپارتمانونه جوړکړیدی او ژمنه یی سپارلی چی پخپل نستړی کیدونکی کارسره د ثور انقلاب اوومه کالیزه ونمانځی. په عکس کی ددغی فابریکی یوه تنه کارګره ګل غوټی ښکاری هغه دا.خ.د.ګ غړی او په کارکی زیاته پوهه لری.

## دځمکی دملکیت سندونو ویش

دځمکو د دموکراتیکو اصلاحاتو د دوهم پړاو د تطبیق په لړ کی د ځمکی د ملکیت دری سوه شپاړس سندونه د فاریاب، ننګرهار او غزنی د ولایتونو پر بی ځمکو او لږ ځمکو بزګرانو باندی پدی ورو ستیو وختو کی وویشل شول.

له دی جملی څخه دځمکی د ملکیت یو سلو شپیته سندونه د فاریاب ولایت د پښتونکوټ، اندخوی د ولسوالیو او د مرکز د بزګرانو له پاره او دځمکی د ملکیت یوسلو شل سندونه د ننګرهار ولایت د سره رود په ولسوالی کی او د ځمکی د ملکیت شپږ دیرش سندونه د غزنی ولایت د مرکز پر مستحقو بزګرانو باندی ویشل شویدی.

باختر

# دپرګنوغوښتنه ترسره کیږی

لکه څنګه چی زموږ هیواد وال خبردی . زموږ ټول خلک اوس په لویه جرګه کی دګډون لپاره چی په دی نږدی وختو کی په کابل کی جوړیږی دخپلو استازو دټاکلو په درشل کی دی دهیواد له ځینو ولایتونو څخه د خلکو استازی ټاکل شوی او کابل ښار ته راغلی دی. زموږ خبریال دهغوی له څو تنو سره مرکه کړی چی وړاندی کیږی :

### نظری



عبدالواحد د سمنګانو د ولایت استازی :

((زه دخپل قوم په نمایندګی چی څلور زره تنه دی په لویه جرګه کی دګډون لپاره کابل ته راغلی یم کله موچی دلویی جرګی اعلان واوریده خلکو په مینه او خوښی سره خپل استازی وټاکل، چی راشی دسولی او آرامی په خاطراو دجګړی او دښمنی دله منځه وړلو په خاطر سلا مشوره وکړی.

موږ پوهیږو او زموږ دهیواد ټول خلک پوه شویدی چی زموږ دولت پرګنیز دولت دی، مهربان دی، دخلکو آرامی ته فکر کوی په هرکارکی دخلکو نظر اخلی. زموږ دخلکو دښمنان له پاکستان څخه وسلی راوړی او زموږ ځیګرونه وژنی موږ اوس په دغه جرګه کی تصمیم نیسو چی نور څوک زموږ سوله او آرامی خرابه نکړی. زه دخپلو خلکو استازی یم دخپل قوم په نمایندګی راغلی یم زموږ قوم سوله او آرامی غواړی او موږ پریکړه کوو او له خپل دولت سره یوځای تصمیم نیسو چی د خلکو غوښتنی عملی شی.))

د زابل ولایت د جلدک ولسوالی د الکوزیو د قوم

استازی حاجی عبدالله :

دجرګی په اعلان سره زموږ ټول خلک په ملی شور اوزوږ او احساساتو سره راټول شول او خوښی یی وکړه چی دخپلو پلرونو او نیکونو دود یعنی جرګه بیا ژوندی کیږی اوخلک له خپل دولت سره چی یوملی دموکراتیک دولت دی دستونزو اولانجو دله منځه وړلو له پاره کښینی او خبری کوی.

او د مذهبی دستورونو سره سم چی خدای تعالی په خپل سپیڅلی کتاب قرآن کریم کی امرکړیدی خلک ورورولی او آرامی ته رابولی.

دثورله انقلاب څخه وروسته چی بی وزلی خلک قدرت ته ورسیدل دخلکو دښمنانو په بیځایه لمسونو سره ځینی خلک تیرایستل هغوی یی یاغی او باغی کړل .خو زموږ دولت ددغو لانجو دله منځه وړلو له پاره په پراخه سینه او حوصله سره دقومونو مشران راغونډ کړل او غواړی دجرګو له لاری اوپه خپله دخلکو د نظر یوله لاری ستونزی حل کړی.

ددغی لویی جرګی پریکړه به لکه څنګه چی پخوا دمیرویس خان، احمدشاه بابا او دغازی امان الله خان په وختونو کی یی زیات ارزښت درلود او نتیجی ته رسیدلی اوس به هم مثبته او آغیزمنه نتیجه ولری او انشا الله زموږ دګران افغانستان خلکو له پاره به یوه سوله، آرامی اودوروری حالی راوړی .

په دی جرګه کی خلک د سرترسری سولی په خاطر، زموږ په هیوادکی د امپریالیزم دلاس وهنو دبندولو په خاطر او له شوروی اتحاد سره د لرغونی دوستی دزیاتیدو په خاطر چی زموږ له خلکو سره یی هروخت مرستی کړی دی اوکوی یی خبری کوی او اوس زموږ خلکو دوست او دښمن پیژندلی دی او پوهیږی هغه څوک چی زموږ خاوری ته توغندی رالیږی اویو افغان دبل افغان پرضد لمسوی څوک دی اوهغه څوک چی زموږ خلکو ته له ډوډی اودرملو څخه نیولی ترفابریکی، بریښنا، ماشین پوری اوپه سلګونو نور شیان راکوی څوک دی؟ په ریښتیا سره دوست څوک دی او دښمن څوک دی؟

ښه، نو موږ په بی صبری سره دلویی جرګی جوړیدو ته سترګی په لاره یو. د نړی ټول خلک موږ ته ګوری چی موږ څه کوو . هغوی ته به ثابته شی چی موږ دخپل پرګنیز دولت یو اوتل له خپل انقلاب سره یو او هیڅکله ددښمن په خبرو نه تیر وځو . نه لویه جرګه به ددغو خبرو ثابتونکی وی محمد آصف

ویاړدی وی زموږ په پلرونو او نیکونو چی له پلرنی هیوادنه په دفاع کی یی دخلکو دیووالی او پیوستون په خاطر زمونږ دویاړلی هیواد په تاریخ کی دجرګو امر. کودود په میراث پری ایښی دی.

## بهرنی خبرونه، واقعیتونه، پیښی

د امریکا متحدو ایالاتو د نیکاراګوا په پولو کی دخپلو ټانکونو ځای پر ځای کول پیل کړیدی .




د پنټاګون غړو : دغو بیلابیلو ماشینو نو په ګریناډا کی خپله آزموینه تیره کړیده. کارتونیست: یوری چرپانوف

## دافغانستان پرخلاف دروغجنو خپرو ګډوډی مرکز

دتاس خبری آژانس دهند دپاتریات ورځپاڼی په قول لیکی لویدیځ مطبوعات تل له کلیشه یی او یونواخته کرید- یتونو سره یو ځای دافغا- نستان په باب ډول ډول جعلیات او له هغو څخه په اصطلاح مهاجرینو له خولی د عینی شواهدو او لویدیځو باوری خبر ځایونو اود هغوی په خیر درپوټونو له مخی دغه جعلیات خپروی .

د پاتریات ورځپاڼه لیکی د خبری مرکزونو له خوا دغه په اصطلاح اطلاعات چی دسی. آی. ای په پیسو دلویدیځو مطبوعاتو لپاره جوړ شوی برابریږی دهغو هدف دافغانستان

(۳ مخ)

لویی جرګی، ملی غوره ژوند (۲ مخ)

دسولی ساتنی ته ریښتینی تمایل (۳ مخ)

# دلویی جرګی لپاره دخلکو داستازو ټاکل

(دلومړی مخ پاتی)

قومونو د مشرانو سپین‌ږیرو عا لما نو او روحا نیو نـو استازو ، د پـلا ر و طنی ملی جبهی د ولایتی شورا د غړو او دهغه ولایت دټولنیزو سازمانونو د غړو په ګډون د شر نی په ښار کی دیوی پراخی ولایتی جر ګی په ترڅ کی خلو ښتت تنه په لو یـه جر ګه کی د ګډون لپاره د خپلو واکمنو اوباوری‌استازو په توګه وټاکل .

د پکتیکا ولایتی جر ګه د عظیم الشان قرآن د څـو آیتو نو په لو ستلو سره‌پیل شوه او ور پسی د ا.خ.د.ګ دمر کزی کمیټی غړی او د ا.د.ج د انقلا بی شورا غړی ملګری سلیمان لایق د لویی جر ګی د جو ړیدو په باب د انقلا بی شورا د حمـل د اوولسمی نیټی فر مان ولوستت او د لو یی جر ګـی د تاریخی ارزښت په باب‌یی رڼا واچو له .

ور پسی دموت خپلو دقوم په نما یندګی ګلخان موتخیل د سلیما نخیلو د قوم پـه نما یند ګی امان الله میرخان خیل، د اندړو د قوم پـه نمایند ګی دوسـت محمد د منحی د قوم په نما یند ګـی ملك نور محمد منحـی او د خرو ټو د قوم په نمایندګـی داود شاه خبری وکړی ، هر یوه د لو یی جرګی د جوړیدو لپاره د دولت له اقدام څخه مننه وکړه هیله یی څر ګنده کړه چی دغه لو یه جر ګـه بریا لی پای ته ورسیږی او خپل تاریخی رسا لت سر ته ورسوی، همغوی دغه راز لـه انقلا بی دولت سره خپـل غوښ‌ملاتړ څرګندکړ او د ثور انقلاب په تیره بیا د هغه د نوی او بشپړ تیا یی پړاو د لوړو ارمانو نو د تحقق په لاره کی یی خپله هـر ډول همکاری و ښوده .

په پای کی د جر ګی غړو یو پیغام تصو یب کړ چی دهغه په ترڅ کی د انقلاب حقا نیت تا یید شوی او دغه راز زموږ له هغه شمیر هیواد والوڅخه چی دښمن تیـر ایستلی دی غو ښتل شویدی چی‌هیوادته راستانه شی‌او له خپلو خلکو سره یوځای شی.

## * کنړ

د کو نـړ ونو ولا یت د بیلا بیلو قو مونو او قبایلو استازیو د ا.د.ج د انقلا بـی شورا د حمل د اوولسمـی نیټی د فر مان په‌رڼا کی د حمل په ۲٦ نیټه د یـوی ستری جر ګی په ترڅ کـی په لو یه جر ګه کی د ګډون لپاره په آزاده او دموکراتیکه فضا کی خپل استازی‌وټاکل.

په جر ګه کی لو مړی د عظیم الشان قرآن څو آیاتونه و لو ستل شول له هغـه ورو سته چی د ا.د.ج ملی سرود څپور شو د ا.د.ج د انقلا بی شورا غړی مفتاح - الدین صافی دا.د.ج دانقلابی شورا د حمل د میا شتـی د اوولسمی نیټی د فر مان متن و لو ست دخبرو په‌ترڅ کی یی د غوره عنعنو اوملی دودونو په تو ګه د لو یـی جر ګی د رول او ارزښت په باب معلو مات ورکړل‌ورپسی د نور ګل د علاقـه داری د پلار وطنی ملی جبهی رئیس محمد ها شم او په جرګه کی څو تنو برخه والو لویا نو او سپین ږیرو د هیواد پـدی حسا سو شیبو کی د لو یی جر ګی د ارزښت او د هغـی د جوړوونکی رول په بـا ب خبری وکړی اود لو یی‌جرګی د جو ړیدو په باب یی دګوند او انقلا بی دولت له اقدام څخه مننه وکړه، ور پسـی دکونړونوولایت دولایتی‌جرګی د قومونو او قبا یلـو اود ګوندی او ټو لنیزو ارګانونو له برخه‌والو څخه یو دیرش تنه استازی په لو یه جر ګه کی دګډون په غرض د رایـو په اتفاق وټاکل شول .

## * بدخشان

دا.د.ج دانقلابی‌شوراد ۱۳٦٤ کال دحمل‌داوولسمی نیټی د فرمان له مخی د بد خشـان ولایت بیلا بیلو قو مونـو او ملیتو نو ورمه ورځ د ولایتی جر ګی په ترڅ کی په لو یه جر ګه کی د بر خی اخیستنی له پاره چی په کابل کـی جو ړیږی خپل استازی پـه آزاده او دمو کرا تیکه فضا کی و ټا کل .

په پیل کی د عظیم‌الشان قرآن څو آیتو نه ولو ستـل شول له هغه ورو سته چی د بد خشان والـی د ا.د.ج د انقلا بی شورا د ۱۳٦٤ کال د حمل د اوولسمی نیټـی د فرمان متن و لو سـت د ا.خ.د.ګ د مر کزی کمیټـی علی البدل غړی ملګری ادینه سنګین د هیواد په دغـه تاریخی حساس وخت کی چی د امریکا امپر یالیزم د امپریا لیستی ارتجا عی ټو لنوپه ملګر تیا د خپلو نـاوړو مقصدونو د تر لاسه کو لوله پاره زموږ په انقلا بی هیواد با ندی نا اعلام شوی جګړه تپلی ده د لو یی جر ګـی جوړیدل ستر تاریخی‌ارزښت وبا له .

ور پسی د ولایتی جر ګی څو تنو برخه والو د هیـواد ددغی لویی جر ګی د جوړیدو په اړوند چی د هیواد دزیارایستو نکو خلکو د یو غـوره دود په تو ګه زموږ د هیواد په سیا سی او ټو لنیز ژوند کی ارزښتناك رول لـری ویناوی وکړی او د ا.د.ج د انقلا بی شورا د حمـل د اوولسمی نیټی دتاریخی‌فرمان هر کلی یی وکړ .

د بدخشان په ولایتی‌جرګه کی اووه دیرش تنه په لو یه جر ګه کی د بر خی‌اخیستنی لپاره په آزاده او دموکراتیکه فضا کی و ټاکل شول

## * بامیان

دبامیانونو‌ولایت خلکودا.د.ج د انقلابی‌شورا د۱۳٦٤کال دحمل د اوولسمی نیټی د فرمان له مخی‌په لو یه جر ګه کـی د ګډون لپاره خپل بـاوری استازی په آزاده او دموکراتیکه فضا کی وټاکل .

بامیا نو د ولایت دخلکو د استازیو ټا کل د یـوی ولایتی جر ګی په ترڅ کی‌چی دهغه‌ولایت دمرکز، ولسوالیو او علاقه داریو د لو یا نو ، عا لما نو ، رو حا نیونـو د پلاروطنی ملی جبهی دولایتی شورا د غړ یو ، د ټو لنیزو سازمانونو د غړ یو او دټولو قشرونو د استازیو په ګډون شوی وه وشول .

ددی جر ګی په پیل کی د ا.خ.د.ګ د مر کزی کمیټـی علی البدل غړی ملګری عوض نبی‌زاده د لو یی جر ګی په باب د ا.د.ج د انقلا بی شورا د۱۳٦٤کال دحمل داوولسمی نیټی د فر مان متن و لوست زموږ د ټولنی په اوسنیـو شرایطو کی یی چی د امپریا لیزم له نا اعلام شـوی جګړی سره مخامخ دی دلویی جر ګی د ضرورت د اهمیت په باب خبری وکړی .

دغه راز پدی جر ګه کی‌له هغه ورو سته چی د مو ضوع په اړوند د ولایتی ګو نـدی کمیټی منشی او د بامیانـو ولایت د پلار وطنی‌ملی جبهی رئیس حا جی نجف علـی د جر ګی د برخه والو په نمایند ګی خبری وکـړی د ا.خ.د.ګ د اصولی کرنلاری او د ا.د.ج له پا لیسی سره د مـلاتړ په ترڅ کی یی پـه هیواد کی د سو لی د تا مین په مقصد د لو یی جر ګـی جو ړیدل مثبت وبلل .

د جر ګی په کار کـی شپاړس تنه د بامیا نو دخلکو د واکمنو استازیو په تو ګه په لو یه جر ګه کی د ګډون لپاره د رایو په اتفاق وټاکل شول .

## * بغلان

دبغلان‌ولایت‌دبیلابیلو قومونو قبا یلو او ملیتونو، دبزګرانو کار ګرانو ، عا لمانو، روحانیونو، د ټو لنیزو سازمانونو د غړ یو ، د وسله وال پوځ داستازیو، د انقلاب‌دمدافعینو د ډلو او د انقلاب د ساتونکو او نورو زیار ایستو نکـو د قشرونو پراخه ولایتی جر ګه ورمه ورځ په پلخمری کـی جوړه شوه په لو یه جر ګه کی د برخی اخیستلو په‌خاطر یی شپږ ویشت تنه استازی په آزاده او دمو کرا تیکه‌فضا کی وټا کل .

په دغه جر ګه کی له هغه ورو سته چی د قرآن شریف څو آیتو نه و لو ستل شول د ا.خ.د.ګ د مرکزی کمیټی غړی-ملګری بر ید جنـرال محمد فاروق د لو یی جر ګی د جو ړیدو له پاره د انقلابی شورا د فرمان متن و لوست د لو یی جر ګی د اهمیت په باب یی چی د مسا لـو او ستو نزو په حل کو لو کـی زموږ د هیواد په ملی تاریخ کی اوږده سا بقه لری اوږدی خبری وکړی

ور پسی په لو یه جر ګه کی د برخی اخیستلوله پاره دخلکو انتخاب شوو استازیو ارباب نواز، شیخ امام‌ابوبکر، محمد عظیم ویناوی وکړی د لو یی جر ګی د جو ړیدو په باب یی د ا.د.ج د انقلا بـی شورا د حمل د میا شتی د۱۷ نیټی د فر مان د هر کلی په ترڅ کی د دولت د چارو په اداره کو لو کی د ټو لـو ملیتونو قو مونو ، قبا یلو او دهیواد د نورو زیارکښانو د پراخه جلبو لو په خا طرد ګو ند او دولت له اقدا ماتو څخه قدر دانی څرګنده کړه .

# لویی جرګی، ملی غوره دود

افغا نستان ، زموږ سپیڅلی هیواد اوږد اولرغو نی‌تا ریخ لری. ددغه تاریخ په‌متن کی‌د ښکیلاګرو او ظالمانو دتیریـو پرضد دافغان دزړ ورو خلکو مبارزی ځانګړی اهمیت لری. دافغا نستان اتلو خلکو هغـه وخت‌چی دهیواد دګټو ،خپلواکی او مالی آزادی په باب‌څه رامنځته شویدی په یوه‌غږ او یوه‌خوله یی دجګړی موږ چل ته وردانګلی دی اودځان پـه سربښندنی سره یی له‌هیواد او آزادی څخه دفاع کړیده .

زموږ له غروره ډکونیکو نو مبارزی دورو ستیو یو نیم زر کلونو په اوږدو کی دفیوډالی ضداو اشغالګروتیری کوونکو ضد مبارزی دسختو اوخونړیو پړاوونو څخه تیری شویدی. په نولسمه پیړی کـی زموږ زړورو اوجنګیا لیو خلکـود انګلیس د ښکیلاك ضد پـه زړورو او روا مبارزو سره‌په تاریخ کی دوطنپالنی اوآزادی غوښتنی ستره‌حماسه ثبت‌کړه او دهیواد پاکه‌لمن یی‌دامپریالیستی اشغالګرانو له وجـود څخه پاکه کړه .

دافغانستان خلکو ، دتاریخ په‌ټولو حساسو شیبو ، پـه ټولو هغو حالاتو کی چی‌دخلکو او هیواددبرخلیك مساله‌رامنځ ته‌شوی‌په‌زیان‌نه‌منونکی‌واحده اراده یی دجګړی ډګر ته‌ور دانګلی دی .

زموږ دخلکو په مبارزه‌کی، جرګی په ټولو سترو اودپاملرنی وړ شیبو کی د هیوادد خلکو دارادی دبیو ستو نډیر لوړ ښکار ندو ی دی .دتصمیم دنیولو په تیره بیا زموږدهیواد دخلکوله پاره په تاریخی ځانګړو وختو نو کی دمسا یلو دحل او پرستو نزو بانـدی دبر ی‌لپاره دجر ګـو دود او ډله ییز زو ږ ، رغنده رو ل لو بو لی دی .

زموږ دهیواد تاریـخ ددی ښکار ندو ی دی چی دلرغونی آریانا په خاوره کی دټولنیزو نظا مونو په ټینګښت سره زموږ دهیواد اوسیدونکو دملی مسایلو د حل‌له‌پاره دجرګو په‌وجود کی ،ډله‌ییزی نظر یی ته مرا جعه کړیده.

د سبها (عوام) او سمیتی (اعیان) سیمه ییزی جر ګـی هغه‌وخت چی عشیروی قبیلوی اړیکی نوی پړاو ته تیر یدی په لیرو وختو نو کی دملـی جر ګو لو مړنی بنسټو نـه شمیرل کیږی .

دغه جر ګی کو لای شود ملی څوا کو نو د تشکل لومړنی زړی او په ډله ییزه‌توګه دمسایلو حل و بولو .

دوخت په اوږدو کی‌دافغانی جرګو له‌خوا ترسره شوی پریکړی نه‌یواز ی د تقنینیه اغیزی لرو نکی په توګـه دی بلکی دقو مو نو او قبایلو په ژو ند کی د ټو لنیزو ټا کلو اړ یکو ټا کو نکی هم پلـل کیږی .

هغه غوره مساله چی دجرګو په اړ و نډ باید وړاندی شی داده چی دافغا نستان د تاریخ په اوږ دو کی جر ګو دخلکو دپرګنو با لقوه ارادی‌ته‌انعکاس ورکړ یدی .

په سیمه ییزو قومی اوملی جر ګو کی حقو قی مسایل او خپل مینځی اړ یکی‌اوهمدا راز قبیلوی ، مذهبی ،ملی،سیاسی‌او ټو لنیز مسایل مطر ح دی .

په افغا نستان کی ملـی جرګو په غوره تو ګه دخلکود آزادی غو ښتو نکو مبارز و، اودبلو سګرو پرضد جهادونو او داشغا لګرو پر ضد جګړو سره نه شلیدو نکی اړ یکـی درلود لی دی . له هغو څخه کولای شو په شپا ړ سمه‌پیړی کی دجر ګو په وجود کی‌دروښنا نیانو د غوړ ځنګ دعصر، دهند دمغولی واکمنو پر ضد مبا رزه کی داوو لسمی پیړی دملی جر ګو دپر یکړ ی له‌مخی دختکو دقبیی مبارز ی اوپه نولسمه پیړی کی د هیـواد دخپلوا کی دبیر ته اخیستلو په‌لاره کی دملی او ژغور نده پاځو نونو د تدار ك لپاره‌د انګلیس داستعمار ګرا نوپر ضد مبارز ی یادو لی شو .

**دافغانستان خلکو، دتاریخ په ټولو حساسو شیبو، په ټولو هغو حالاتو کی چی دخلکو او هیواد دبرخلیك مسأله رامنځته شویده په زیان نه منونکی واحده اراده یی دجګړی ډګرونو ته وردانګلی دی**

په لیرو وختو نو کی دملی جرګو دتاریخ په نظر کی‌نیولو پرته، زمو ږ د هیواد د لویو جرګو په تاریخ کی دبدلـون دیو ه ټکی په تو ګه‌د ۱۷۰۹ میلا دی کال لویه جر ګه ده.

دغه تاریخی جر ګه دمیرویس خان هوتکی تر رهبری لاندی د ټولنی په سیاسی او ټولنیز ژو ند کی ارز ښتناك رول تر سره کړ . دغه لو یه جرګه په داسی شرایطو کی جوړه شوه چی زموږ هیواد دایرا نی صفو یانو د تـیری هدف ګر ځیدلی و. ددغی‌تاریخی لویی جرګـی پایلـی د صفوی نیوا ګکرو په شاتمبول او په افغا نستان کی دملی - قبیلوی واکمنی د هستو جوړول وو .دهو تکتیا نوددولت له را پر زیدو ورو سته چی بیاهم زمو ږ هیواد د صفو ی نیوا ګکرو د یرغـل هدف و ګرځید، دافغا نستان زړه ورو او خپلوا کو خلکو بیادیووالی اومبارز ی لاره و نیوه .ددغه کار څر ګند عامل د ۱۷٤۷کال لویه جر ګه وه . دغه لو یـه جرګه زموږ په هیواد کی‌دویمه لویه تاریخی او ملی جر ګـه وه چی‌په افغا نستان کی یی داحمد خان ابدالی تر مشر ی لاندی واکمن دو لت جوړکړ.

دافغا نستان نو م له دغـو دوولو یو جر ګو ببره ګړدی. زموږ دهیواد په تاریخ کی په هغووختو نو کی چی په افغانستان کی کور نـی قو می- قبیلوی کړ کیچو نـه وو ،د ۱۸٦٥ کال لو یی جر ګه‌دامیر شیر علیخان په وخت کـی‌د کورنیو کړ کیچو نو دحل په منظور جو ړه شوه . دغه‌لویه جرګه هم په خپل وارسـره دافغانستان د ۱۹ پیړی پـه تاریخ کی ځانګړی ملی ارزښت لری. دهیواد دخپلواکی دبیر ته اخیستلو او دبریتانیا پر امپریا لیزم باندی له بری وروسـته د ۱۳۰۱ او ۱۳۰۳ کلونو لویو جرګو دخپلواکی- ملی واکمنی او د ځمکـی‌د بشپړ تیا په ټینګښت ، او د هیواد په پر مختګ کی ارزښتنا ك رو ل و لو بـاوه ،د ۱۳۰۱ کال لو یه جرګه‌د امان‌الله پا چا په وخت کی‌دبدلون غوښتنی پرو ګرا مو نـو د پراختیا لپاره لومړ نی ګـام شمیرل کیږی. د ۱۳۰۳ کال لویه جرګه دهغو ریفور مو نو په‌لور یوبل نو ی ګام شمیرل کیږی چی دامانی دو لـت‌د اقتصادی او ټو لنیزو بدلونونو د سر ته رسو لو پـه منظور پور ته شوی و .

زموږ دهیواد په تاریخ کی د۱۳۲۰ کال لو یه جر ګه هم ستر ار زښت لـ ری . دغه‌لویه جرګه په داسی شرایطو کی جوړه شوه چی ددو یمی نړیوالی جګړی اوربل شوی واو دفاشیزم خطر بشپړ یت تـه‌د نا بودی ګوابن کاوه .

په دغه لویه جر ګه کی د افغانستان د خلکو استا زیو له فا شیزم څخه دکر کی، د ناپیيلی سیاست د ساتلو ،له ګاونډ یانو او په تیره بیا لـه شوروی اتحاد سره ددو ستانه اړیکو او ښه ګاو ندیتو پـد مناسبا تو له‌مخی خپله اراده دوخت پر واکمنو ټو لنوباندی ومنله . دهمد ی لو یی جرګی د تصمیمو نو په نتیجه کی له هیواد څخه دجر منی‌او ایتا لیا د [illegible]ادو نو استا ز ی وایستل شو ل . په دغه لویه جرګه کی څر ګنده شوه چی: افغانسـتان غواړی له معا هدو هیوادو او په تیره بیا له‌خپلو ګاو ندیانو سره دسو لی په فضا کی ژو ند و کړی .همدا رنګه د ۱۳۳٤ کال لو یه‌جرګه زموږد خلکو لپاره ځا نګړی ار زښت لری . دغی لو یـی جرګی د پښتنو او بلو څـو ورونو خلکو له روا مبارز ی څخه د هغوی د بر خلیـك‌د ټاکلو لپاره دافغا نسـتان دخلکو ملاتړ څر ګند کړ.لوی جرګی هماغه وخت «له سترو هیوادو څخه دپاکستان دپوځی مرستو په اخیستلو سره په سیمه کی دځوا کو نـود انډول دګډوډو لو له مخی» د پاکستان د هماغه وخت‌حکومت‌سیاست د افغا نستا ند آزادی او ځمکی بشپړ تیالپاره یو خطر و باله .

دغی لو یی جر ګی یو ځل بیا دافغان- شورو ی داړیکو دپرا ختیا له مخی زموږ دخلکو اراده څر ګنده کړه .

په څلو یښتمه لسیزه کی کی د هیواد د هیواد پالو او تر قی غو ښتو نکو ځواکونو دمبا رزو د سختوا لی له امله سلطنتی واکمنی ټولنی مجبوری شو ی چی له خپل سریو او مطلق العنا نی څخه دخلکو د ژورو نا رضایتیو او رواغوښتنو پ ه‌وړاندی په ۱۳٤۳کال لویی جر ګی په تر ځ کـی نوی اساسی قانون نا فذ کړ. په‌دغه لویه‌جر ګه کی‌دسلطنتی مرتجع محافلو دتما یلا تو او تاریخی محدود یتونوسره‌سره هم په پول د پولو نو دملی‌او بین المللی مسا یلو په برخو کی دافغا نستان د خلکودپرګنو اراده منعکس کیده .

خوهمدا راز زموږ د هیوادپه تاریخ کی نشو کو لای په‌لویو جرګو کی د وا کمنو مرتجعو دنفوذله څرګندو ښنو ښنانو څخه‌چی کله‌کله یی‌وکولای‌شول خپل نظر یا ت ور باندی‌وتپی اودخلکو په ارادی سترګی‌پټی کړی انکار وکړو .

زموږ په هیواد کی د لویو جرګو تاریخ ددی څر ګندو ی دی چی لو یو جر ګو د ملـی غوره دودونو په تو ګه ،دوخت په حساسو شیبو کی دخپلواکی ، آزادی ، ملی حاکمیت‌او دځمکنی د بشپړ تیا په خاطر زموږ دخلکو اراده منعکـس کړیده .

دخپلواکی اوملی واکمنی دځمکی بشپړ تیا دټو لنیزی سوولی او تر قی دساتلو او ټینګښت په خاطر زموږ دخلکو واقعی‌اراده‌یوازی‌اویوازی‌دثور پرتمین انقلاب په‌بریالی توب سره عملی تجسم و موند.

دثور پر تمین انقلاب چـی دا.خ.د.ګ په مشر ی دهیواد دزیاتو میلیو نی زیار کښانو دارادی له مخی بریالی شو د خلکو نو ی ټیپ سیا سی واکمنی یی رامنځته کړه.دا.د.ج دولت دهیواد دزرګو نو کلونو په تاریخ کی لومړ نی دو لت دی چی زموږ په هیواد کی‌د ملی واکمنی ممثل اود خلکوډ ربښتینی ارادی سر چینه ده.

په افغا نستان کی د ثورملی دمو کراتیك انقلاب دخپلواکی او واکمنی ،د ځمکـــی بشپړ تیا ، دمو کراسی ،عدالت او د ټو لنیزی هراړ خیز پر مختګ او دسولی داصولو له‌مخی یی زمو ږ د خلکو پـه وړاندی د پیر یو ورو ستـه پاتی والی څخه د ر ښتینـی غوړ یدو او لو ړ تیا په لـور دودی ربښتینی لاره پرانیستـه زموږ دانقلاب هد فو نه دافغانستان دخلکو د پراخو پر ګنو غوښتنی او ارادی چی کلو نه کلو نه‌یی د ظلم او ستم‌دپوندو لاندی‌رنځ‌ګاللی‌څرګندوی.

د ثـور انقلاب او د هغـه دنوی او بشپړ تیایی پـړاو- هدفونو سرته رسو ل په‌ټولنیزی او ملی برخه کی‌دهیواد دټولو زیار کښو خلکو ، ټولو ملیتونو ، قو مونو اوقبایلود یو والی ضما نت کو ی .دا.خ.د. ګ زمو ږ د ټولنـی او خلکو درهبر ی کوو نکـی او ساز مان ور کو ونکی ځواك په‌توګه دنو ی عاد لانه ټو لنی دجوړولو په کار کی دهغو ی دمساوی ګډو ن دتامین له‌مخی دهیواد د ټولوملیتو نو،قومونو اوقبایلو د برابر ی‌او ورورولی داصل تامین خپل غور ه هدف ګڼی .

په‌دغه‌کارکی‌په‌هیوادپالو اوملی هدفونو ،دنا برابر یو په لـه منځه وړ لو او دربښتینی برابری په ټینګښت کی چـی د افغا نستان د خلکو له ارادی سره سمون لری زمـوږ د ګـونـد وفـاداری نغښتی‌ده دا.خ.د. ګ د عمل کرنلا ره، دګوند دستر تر سری کنفرانس سندو نه او دهغه پنځلس ګونی پلینو مونه ،دا.خ.د.ګ دمرکزی کمیټی دعمومی منشی او دا.د.ج دانقلا بی شورا د رئیس ملګری ببرك کارمـل ارزښتنا کی وینا وی او نور ګو ندی معتبر سند ونه پدغی برخه کی ژو ندی شا هد دی.

ددغو زرینو اصو لو له مخـی انقلابی واکمنی دانقلاب ملـی هدفونوته ګوری . زمو ږدګوند او انقلابی دو لت ملـی سیاست په لومړ ی ګام کـی ملی او افغا نی غوره او ارزښتناکو دودونو او رواجونوته درناوی او همداراز د زیارکښو پرګنو په ګټه دټو لنیـزو اقتصادی بدلو نونو په سرته رسولو کی د هیواد د ټو لو خلکو دګډون لپاره د عملـی زمینو د برابرو لو لړو نکـی دی .

ددی اصل په اتکا ء سره‌زموږ ګو ند او انقلا بی دو لـت دهیواد دملیتو نو ، قو مونو او قبایلو د یو موټی کیدو او نږدی کیدو په بر خه کی او ددوی دغوره دودونو دودی او رغنده تکامل په‌هکله لازم اقدامات او تد بیرو نه سرته رسوی .

په هیواد کی په زر ګو نو قومی جرګی او دا.د. ج پلار وطنه ملی جبهه دټولو ملیتونو قومونو او قبایلو او دهیوادد ټولو ملی ځواکونو اوریښتینو هیواد پالو د یووالی دتا مین له پاره او په هیواد کی‌دانقلابی اوبر خلیك جو ړ وو نکو بدلونونو په کار کی دبر خی اخیستلو دتامین په بر خه کی دج رګو د تکامل مو ندو نکی بڼی په‌تو ګه زموږ دد غی‌وینا ساهد دی .

د ثور انقلاب د بریالیتو ب له‌هماغه وختـه څخه زمـوږد خلکو دد ښمنانو د غو سی او لیو نتوب‌ډك مقاومتونو سـره مخامخ‌شو. ارتجاع اونړیوال امپریالیزم‌دا.د.ج‌پر خلاف‌دنااعلام شو ی جګړی دلمنی په پراختیا او په کار اچو لو او زموږ د سر لوړی ، له غروره ډك‌او خپلوا ك‌هیواد په کورنیو چارو کی په لاسو هنی سره هلی ځلی کو ی چی دانقلابی بریاوو اود انقلاب ور ستیو هدفونو ته درسیدو مخـه ونیسی .

ټولو ته رو ښنا ده چی دامپر یا لیزم او په سر کی دامریکا امپریالیزم ، د چیـن لویی غو ښتو نکی شمونیستان ،دپا کستان نـظامیګران ، په ایران کی واکمنه ارتجاع او دهغو ی سیمه‌ییز او نړ یوال انډ یوالان په‌اوسنی وخت‌کی دانقلا بی افغانستان پر ضد دغه رذیلا نـه هدف پرمخ بیایی څو دا.خ.د. ګ او دا.د. ج دو لت دپرو ګرا مونو دتطبیق په لاره کی چی دخلکو د پراخو پر ګنوپه ګټه طر ح او عملی کیـږی خنډ‌پیدا کړی اوزمو ږ دهیواد دشاو خوا حالت کړ کیچـن پاتی شی .

زموږ د انقلاب دښمنـان د انقلا بی ضد با ند یتا نو په روزنه ، وسله وال کو لو او سمبا لولو او د پو لو له‌اخوا څخه د افغا نستان دموکراتیك جمهوریت خاوری ته د انقلا بی ضد ورانیـو -او فعا لیتو نو په غر ض د هغو په را لیږ لو سره هلی ځلی کوی چی‌په هیواد کی‌دانقلابی بد لو نونو بهیر د ځنډ سره مخا مخ کړی او پری نه‌ږدی چی خلك د انقلاب له ښیګنو څخه لکه څنګه چی لازم دی ګټه واخلی او د افغان پـه وسیله د افغا وینی توی‌کړی:

پدا سی حسا سو شیبوکی د ا.د.ج انقلا بی شـورا د خلکو غوره دودونو تـه پـه درنښت او د ملی جر ګـو د دندی عنعنی ته په پاملرنی سره د خلکو د ربښتینی‌ارادی له مخی ، د اسلام د سپیڅلی دین له حکمو نو سره سم د هیواد د خلکو د واکمنـو استازو عنعنوی لو یه جرګه د ۱۳٦٤/۱/۱۷ نیټی پـه فرمان سره را وبلله څـو ((په هیواد کی د داده امنیت او سو لی د تا مین په لارو چارو با ندی د خبرو اترو، د ا.د.ج په کورنیو چارو کی د امپر یا لیستی او ارتجاعی ځواکونو د لاس وهنی پـه بند یدو، او زموږ د هیوادپر خلاف د نا اعلام شوی جګړی په بند یدو ، د ثور د ملـی او دمو کرا تیك انقلاب پـه بری سره د سر ته رسو لو او پدغه کار کی د خلکـو پراخو پر ګنو د لا زیات‌ګډون په منظور د افغان په وسیله د افغان د وینو تو یو لـو د مخنیوی او د ا.خ.د.ګ او د ا.د.ج د بهر نی او کورنی سیا ست په باب د خلکـو د واکمنو استازو د رایو د څر ګندولو په منظور جوړه شی.))

په اوسنیو شرا یطو کـی د لو یی جر ګی د جو ړیدو پر یکړه د افغا نستان دخلکو له تاوده او زوړنده هر کلی سره مخا مخ شویده .

همدا اوس د هیوادملیتونه قومونه او قبا یل زمـوږ د زړورو او خپلوا کو پلرو نو او نیکو نو په څیر د خپلـو استازو په انتخا بو لو سره د ا.د.ج انقلا بی شورا بلنی ته ځواب وایی : هغوی‌غواړی زموږ د هیواد د تاریخ په دی حسا سو شیبو کی په مهمو تاریخی مسا لو سلا مشوره وکړی .

د ا.د.ج د انقلا بی شورا دغه را بلنه یو ځل بیا ملی لوړو روا جو نو او دودونو، د پر ګنو رایو او د ګو ندداو خلکو یووالی ته زموږ دګوند او انقلا بی دولت غو څـه وفا داری څر ګندوی د لویی جر ګی جو ړیدل به د سولی او په هیواد کی سر ترسری آرامی په لاره کی اودانقلاب د ورو ستیو هد فو نو پـه بری کی ستر ګام وی .

پسرلی

# دبی بنسته تورونو ردول

پرون له غرمی‌ه خکی پـه یوو لسو بجو او دیر شـو دقیقو په کابل کی دپاکستان د سفارت شارژدافیر دبهرنیو چارو وزارت تـه احضار اود سیا سی لو مړی څا نګی د مدیر له خوا دغه ټکی ده تـه څر ګند شول .

پا کستا نی مقا ما تو په خپلو تیری کوو نکو عملونو با ندی د پردی اچو لو پـه خاطر د ا.د.ج پر خـلاف د مخکینیو بی بنسټو تورونوپه لړ کی بیا هم ادعا کړیده‌چی ګنی د ۱۹۸۵ کال د اپریـل په یو لسمه نیټه شپـږ افغا نی الو تکی د چتـرال فضا یی قلمرو تـه د دری کیلو مترو په واټن ننو تی‌او د ارندو د جنوب ختیځ پـه دوه کیلو متری کی یی دری بمو نه غور څو لی دی چی کوم زیان نه دی رسیدلی .

د ا.د.ج مقا مات دغه ادعـا یو بی بنسټه او له دښمنـی ډك تور بو لی او هغه په‌غوڅه تو ګه ردوی او د پا کستان له حکو مت څخه غواړی چی دغه جعلیات چی په یو لوکی له کړ کیچ پر ته بله نتیجه نلری پای ته ورسوی .

باختر

# له کابل څخه تګ

دا.د.ج دبهرنیو چـارو وزیر ملګری شاه محمددوست پرون له غرمی وروسته دیـو هیأت په‌مشری‌دنا پیپلوهیوادونو دسمون‌دبیرو‌په‌فوق‌العاده غونډه کی دګډون په مقصـد چی دحمل له دیرشمو نیټـی څخه دثور تر لومړی نیټـی پوری دبهرنیو چارو دوزیرانو په سویه جوړ یږی نوی ډیلی ته لاړ .

باختر

# بهرني خبرونه ، واقعيتونه ، پيښنې



د اطلاعاتو دسیستم ادغه کوچنی کمپیوتری ماشین د ۱۹۸۴ کال په ننداړتون کې د آلمان په دموکراتیک جمهوریت کې د ننداره کوونکو دپاملرنی وړ وګرځیدٌ .

دغه سیستم دماګدیبورګ دکارخانې دخوانوکارګرانو د یوی ډلې له خوا جوړشویدی. په ننداړتون‌کی ۲۳۴۴ تخنیکی وسیلی ننداری ته وړاندی‌شوی چی ددغه هیواد څخه دپاسه ۲۷۰۰ ځوانو مختر عینو پکی برخه اخیستی ده .

## دافغانستان پرخلاف دروحي جګړې غوره مرکز

(د لومړي مخ پاتې)

د شاو خوا حا لا تو په با ب ددروغو او لمسوونکو موادو خپرول دی .

دغه ددروغو تولید وو نکی فابریکې په تیره بیا په‌پیښور کی انقلاب ضد مرکز اودافغانستان دانقلاب‌ضد پروپاګندی سرویسونو په شمول دی.

دپاتریات ورځپانه لیکی پدی وروستیو وختو کی‌د ا.د.ج جمهوریت پر ضد د روحی جګړی دلمسوونکی او چلوونکی په پر مختیا یی هیوادو کی دافغانستان پرضد خپلی پروپا ګندی ورځ په ورځ زیاتوی خود افغا نستان پرضد دورانکارو پروپا ګندو ستر مرکز په اسلام آباد کی دامریکا دمتحدو ایالا تو سفارت دی .

دافغا نستان په باب ددروغ جوړولو دژرندی دفعال ساتلو لپاره په اصطلاح ددیپلو ما تیکو خبر خایونو له خولی دغه‌خبرونه‌سره سرپه‌سرکوی چی لوستو نکی ګنی هغه‌سم اطلاعات چی په حقیقت کی دافغا نستان په باب دده بی لاری کول دی تر لاسه کړی.

سر بیره پردی په پا کستان کی دامریکا دسفارت یو لوړ رتبه غړی سبا اوبیګا نوی ډیلی ته ځی چی مطبوعاتو ته ځانګړی معلو مات ورکړی .

نه هیرو و چی لویدیځ خبریالان له هغو اطلاعا تو څخه چی دسی.آی.ای له خوا دافغا نستان په‌باب جعل کیږی ریپو ټ برابروی له‌دی امله پوهیدلی شو چی څرنګه له هغه هیواد څخه دافغا نستان په باب په اصطلاح سم‌خبرونه دلویدیځو مطبو عاتو له خوا خپریږی .

باختر

## په‌ایران کی نوی نښتی

دنړیوالو خبری آژانسونو درپوټونو له مخی دتهران په واټونو کی بیا پراخی نښتی شویدی .

دتهران دکیهان دورځپانی له خولی ریپوټ ورکړ شویدی چی خیابانی پراخی مظا هری دتهران دښار دخلکو اودولتی ساتونکو تر منځ له هغو نښتو څخه وروسته پیل شویدی‌چی دهغو په ترځ کی یو ځوان مړ شو .

ددغو مظاهرو په وړاندی چی همدا اوس دتهران په‌ښار کی روانی دی دایران درژیم مخالف ځوا کو نه ولاړ دی.

دایران دولتی مقاماتو اعلام کړیدی چی تر اوسه پوری‌یی په دغو مظاهرو کی دری سوه تنه نیولی دی .

رپوټونه وایی چی مظاهره کوونکو له عراق سره دایران دجګړی ددوام پر ضد شعار ورکاوه .

باختر

## په‌جاپان کی دسولی مظاهری

د جاپان د سو لې د مبارزینو له خوا د هغه هیواد دیو کوسو کای په‌ښار کی ستری مظاهری او غونډی و شوی .

مظاهره کوو نکو د جا پان دیو کوسو کای اډی ته‌دنیو‌یارك ستی په‌نامه په اټو می وسلی سمبال دامریکا دمتحدو ایالاتو د اوبتل دورنوتلو پر خلاف احتجاج وکړ .

دجا پان دسو لی پلو یانو جاپانی اډی ته د متحدو ایالاتو داو بتل دبیا ور ننو تو په خاطر خپله اند یښنه څرګنده کړه .

دغه او بتلو نه د تو ما هاك په نامه په کروز تو غندیو سره چی اټومی خو لی لری سمبال دی .

با ختر .

## دهمکاریو پراخوالی تینګار

دتاس آژانس درپو ټ له مخی‌د شورو ی اتحاد تاریخی ځایو نو دجو ړیدو او بیا ژو ندی کیدو په‌باب ننداړتون چی د ستر ی و طنی جګړی په کلو نو کی ړنګ شوی وو دلندن دپار لمان په ودانی کی پرا نستل شو .

دانګلستان ل ه‌کار ګر ګوند نه دهغه هیواد د پار لما ن غړی جیمز کالا هان دغه ننداړتون دپرا نستلو په وخت کی‌دنازیزم له منګو لو څخه دارو پاد آزادی په کار کی د شورو ی اتحاد غو ځ رول ته اشاره وکړه .

او د شورو ی اتحاد او انګلستان تر منځ یی دمتقابلی ګټوری همکاری په پر مختیا ټینګار وکړ .

باختر

## بل جنایت

نړیوال خبری‌منابع دکراچی دروغتونونو دطبیبانو له خولی ریپوټ ورکوی له هغو کسانو څخه لس تنه چی دپاکستان‌د پوځی رژیم دسیاست پر خلاف دوړمی ورځی په‌مظاهرو کی‌دپوځی‌رژیم دپولیسو لخوا پری‌ډزی شوی‌وی مړه‌شویدی.

په وژل شویو کسانو کی یوه محصله‌نجلی‌هم شامله‌ده.

ریپوټ زیاتوی‌چی په‌کراچی کی‌له وړمی ورځی پرځو مظاهرو څخه وروسته ددغه ښار په پنځو سیمو کی په ټګ راتګ باندی دبندیز مقررات لګول شویدی .

پدغو مظاهروکی د پولیسو د ډزو له امله څه دپا سه سل تنه ټپیان شویدی .

باختر

# دسولي ساتنی ته رښتینی تمایل

د شوروي اتحاد سو له‌پیز نو ي نو ښت چی دشوروي اتحاد دکمو نیست ګو نـد د مرکزي کمیټی د عمومي منشي ملګري میخا ئیل ګر باچف‌له خوا دپرا ودا دور ځیا نی‌سره دمر کې او دامریکا دمتحدو ایا لتو نو د نما ینده ګا نو دمجلس له استا زي سره دوزو ښتی کتنی پ ه‌ترځ کي وړاندي شو . یو ځل بیا یې دسو لی ددا عیی دساتلو ،د امریکا دمتحدو ایالتو نو و شوروی اتحاد تر منځ اړیکو دښه کیدو پ ه‌خاطر تما یل اثبات ته ورساو ه . د سږ کال دنوامبر تر میا شتی پور ی‌د شورو ی اتحاد د منځنیوا ټن ویشتو نکو ټو لو تو غندیو دځای پر ځای کو لو دیو اړ- خیزه‌بندو لو مهلت او دد غه هیواد د ځوا بیه نورو اقداماتو ځنډول دهغو نو ښتونو له‌ډلی څخه دي چی هغه د شوروی اتحاد دتیرو نو ښتو نو پر اساس چی شورو ی اتحاد به داتو می وسلی لو مړ ی استعما لوو نکی هیواد نه‌وی کم نشو ګڼلی .د شورو ی اتحاد دسو لی غو ښتنی نو ښتونه او ددغو جو ړوو نکو پیشنهاد و نو لړی ښیی چی دغه هیواد په پر له پسی توګه په‌دی لټه کی دی‌تر څود شوروی اتحا د او دامریکا دمتحدو ایالتونو اړ یکی عاد ی حالت ته را وګر ځـی . او ددواړو هیوادو نو د خلکو په ګټه اوپه نړی کی دسو لی‌ددا عیی په ګټه دښو اوګټورو دوه اړخیزو مرستو ښنسټ کیښود ل شی یی له شکه ددوو بیلو بیلوټو- لنیزو نـظا مونو تر منځ تو- پیر ونه باید دیو بل په‌وړاندې دکر کی په را باور لو پای ته ونه رسیږی . د اویاو کلو نو تجربو په څر ګنده تو ګـه وښود له چی دښو علـمی او تخنیکی مر ستو ټینګښت‌دټول بشریت په ګټه دد یتا نت د ښهیر دپر مختګ ستر کار اود بین المللی کړ کیچو نو پـه کمښت پای ته ورسید .په هغه وخت کی هـم دد واړو هیوادونو ترمنځ چی د بیلـو بیلو نظا مو نو لرو نکی دی‌د سوله ییزه ګډ ژو ند پرا صل باندی ټینګار شو ی و .

هغه شی ته چی نن ور ځ دلویدیځ او ختیځ داړ یکو دښه والي او دسو لي د ټینګښت له پاره‌په بین المللي سطحه‌کي اړتیا ده هغه د امریکا دمتحدو ایالتونو د مشرانو ښه نیت رښتیني تمایل او سیا سـی اراده ده . دشورو ی اتحـاد لوری په خپلو خبرو او عمل کي په‌ثبو ت رسولي چي دار- نګه ښه نیت ، سیاسي اراده او رښتیني تمایل لری او وبه یی لری .

دنړی داو سنی کړ کیچـن حالت دوام چی دامر یکـا دمتحدو ایالتو نو دمشرا نود میلیتار یستي او جګړه مـار سیاست څخه سر چینه اخلی په هیڅ ډول دد واړو هیوادونو دخلکو او دنړی دنورو خلکوپه ګټه نه دی .

مقصدونو لاس پوری کړیدی.

دسپیني ما ڼی د مشرا نود خبرو دمحر میت سره سره‌د ژنیو په خبرو کي دامریکـا دمتحدو ایالتو نو ددریځ په هکله پراخه معلو مات دبورژ- وازي دمطبو عا تو په‌وا ك کي ورکړ ل شوي دي .هغـو ي‌د امریکا د پیشنهاد و نو پـه برخه کي تبلیغ کو ی او هغه ډیر ستر ښیي او بر عکس‌د شوروی اتحاد په نو ښتو نو رغنده او سوله ییزوپیشنهاد- ونو باندي سترګي پټي کړي‌از دهغو په برخه کي چوپتیاغوره کوي دامریکا دمتحدو ایا لتو- نودمشرانو په‌ریاکارانه څر - ګندو نو کي‌په نړۍواله سطحه دشورو ی اتحاد دپو ځي لوړ- تیا په‌بر خه کي او تي‌بو تي ویل کیږي او ددي پلمي‌لاندي دسپیني ماڼی د مشرانـــو میلیتا ریستي او جګړه مـار سیاستو نه تو جیه کـیږي . همدا اوس دام . اکس دلویو وچو ویشتو نکو تو غند یـود تو لید ما جرا غو ښتو نکـی طرحي او دکیها نی فضاد پوځي کولو مسئالي ته د ژنیوپـه خبرو کي د بر یا لیتو ب‌داسا- سي عامل او غوره فکټور پـه تو ګه ځای ور کړ شو ی دی.

بر سیره پردي شـورو ی اتحاد غواړي د ژنیو خبري په کلکه سره تعقیب شي او پـه مثبتو پایلو پای ته ور سیږي دغه هد فو نه به هغه وخت‌تر سره شي چي دامریکا متحـده ایالتونه دلمسو و نکو اوخطر ناکو او کیها ن ته دوسلـه والو سیالیو دلیږ دو لو طرحي او داتومي لومړي ګو زار کولو په منظور دو سله والو سیا لیو دنوی پړاو له پیل کیدو څخه منصر ف شي . که چیر ی‌د ریګن اداره دبرابر ی‌اوامنیت داصل پر اساس دیو ګډ‌توافق ته درسید و له پاره علا قمنده وای‌بایدچی پورتنګ نوښتو- نو او هڅو ته لکه مهلـت اخیستل او په ارو پا کـی دمنځنی واټن ویشتو نکو تو- غندیو نه ځای پر ځای کو لو او نور و سو له غو ښتو نکو اقدامو نو ته ورسیږی .

نړیوا ل په دی خبر دی‌چی شورو ی اتحاد ددې ډول حالت دبندولو تل غو ښتنه کړی او دامریکا دمتحدو ایالتو نو او شورو ی اتحاد تر منځ دګټورو دوه اړخیز و مرستو او اړیکو دښه کیدو او په بین المللی سطحه کی دسو لی دټینګښت غوښتو نکی دی .

دریګن دادار ی کړ غیږ نی هلی ځلی چی غوا ړی‌دشوروی اتحاد او سنی او پخوا نی نو- ښتونه او پیشنها دونه مسخ او بل‌ډول یی وښیی او دنړ ی دسو لی خو ښوو نکو ځوا - کونو شك او تر دیـد ددی هیواد دښه نیت او صدا قت په‌هکله د ژنیو دخبرو په پر- مختګ کی را پاروی .

دوا ښنګټن مشرانو همـدا اوس دخبرو د محر میت‌ساتلو له‌مخی دخپلو ژمنو دترپښو لاندی کو لو او له خبرو څخه دعدم استفاد ی په بـــاب په‌پرو پا ګنډی او تبلیغا تی

خالد حافظ

## شوروی اتحاد د اتومی وسلو دکمولو پلوی دی

## له‌اپار تایدڅخه دامریکا ملاتړ

د امریکا د جنرال مو ټورز اونورو شر کتو نو پټیبلي ده چی د جنو بی افریقا له نژاد پال رژیم سره خپلی همکاری ته دوام ور کړي .

په دیټرایت کی د یکشنبی په ورځ ددغو شر کتو نـو استاز یو ته وویل شو ل‌چی دپر یټور یاله ر ژیم سره‌عادی سودا ګر ی‌دوام کوی .

دجنرال موټو رز او فور د شرکتو نو دجنو بی افریقـا نژاد پال رژیم ت ه‌دوسا یطـو ستربرابروونکی‌دی.

باختر




د المان د دمو کرا تیـک جمهوریت دای.ډی. ان آژانس د ((ګډ بازار)) پـه غـرو هیوادونوکی په ۱۹۸۰-۱۹۸۴ کلونو کی د بیکاری دسطحی دلوړولوګراف خپورکړیدی. په دغه پلاکټ کې چې دغه ماشوم یی له ځا نه سره لری لیکل شو یدی: ((بناغلي رئیس جمهور ! زما پلار ته کاربیرته ورکړی.))




# زیان نه منونکی دوستی

## دپولیند او شوروی اتحاد د دوستی دتړون دلاسلیک کیدو دڅلویښتمی کالیزې له امله

د ۱۹۴۵ کال داپر یل‌پـه یوویشتمه نیټه د شورو ی اتحاد او دپو لینډ دخلکـو جمهوریت تر منځ ددو ستی، همکاری او متقا بلی مر ستی مهم تړو ن لاسلیك شو .دغه تړون چی په حقیقت کی یی‌د دواړو هیوادو تر منځ دنوو او جوړو ونکو اړ یکو بنسـټ کیښود او دسترا نتر ناسیو- نالیست لنین د زیږ یدو پـه ورځ لاس لیك شو ، ددوا ړو هیوادو دتکړه او لا دونـډود دو ستی او ورور ګلو یـزی همکاری ـتمنو اید ه آلو نوته یی چی یودبل سره اوږه په اوږه‌دپو لینډ د خپلوا کی اود فاشیزم دله منځه‌و ړلو لـه پاره وجنګیدل د عمـل جامه واغوسته . نو مو ړی تړو ن دپو لینډ دبیا جـو ړو لو او صنعتی کو لوپه بهیر کی‌مهم او اساسی رول ولو باوه اود دواړو هیوادو تر منځ‌داقتصا- دی اړیکو په یو ټینګـــك بنسټ واو ښت .

دفاشیزم ل ه‌جګ څخه دپو- لینډ له خپلوا کی وروسته په لومړیو کلونو کی په داسی حال کی چی فا شیستی یر - غلګرو ددغه هیواد ملی صنایع څه ناځه له منــځه وړی وو، شوروی اتحاد د غلو دانو ،د صنایعو له‌پاره داو مو موادو، دپو لینډ دملی صنایعو دبیـا جوړو لو له پاره د ضرور ی ماشین آلاتو او تجهیزا تو په ورکو لو سره ، ددغه هیوادملا تړ ته ورودانګل .

دپو لینډ او شورو ي اتـحاد داو ږدی‌مودی اقتصا دی مر- ستو دپو لینډ دصنا یعـــو دجو ړو لو او پرا ختیا په‌بهیر کی مثبت او انکار نه منو نکی اغیزی کړ ی دی .

شوروی‌اتحاددطبیعی ګاز په‌مقابل کی دپو لینډ د ډبرو سکرو د تبادلی تړون چی د پو لینډ دصنایعو حیاتی اړ تیا تـــه ځوا ب وایی ددغو ورور ګلو- یزو اقتصادی مرستو یوه ښه بیلګه ده .

دپو لینډ او سورو ی‌اتحاد ترمنځ‌علمی‌او تکنا لو ژیکـی مرستو چی د شورو ی اتحاد له تخنیکی پر مختګو نو څخه یی دپو لینډ دبر خمن کیـدو شرایط برابر کړ ی دی ددواړو هیوادو ترمنځ دورور ګلو یزی همکاری یوه بله بیلګه ګڼلـه کیږی .د پو لینډ او شورو ی، اتحاد ترمنځ د متقا بلومر - ستو او دو ستی تـــړو ن ،د پولینډ او شورو ی اتحاد داو- سیدو نکو ملتو نو تر منځ د فرهنګی اړ یکو دپرا ختیا په برخه‌کی ډیر اغیز مـــن دی

دپو لینډ ټو لنی دد غودو- ستانه اړ یکو په تکیه کو لو سره دخپلی سو سیا لیستی پراختیا پړاو پیل کړ ی دی.

دپو لینډ او شورو ی اتحاد ترمنځ ددوستی ، همکاری او متقابلو مر ستو د تـــړو ن تصو یب ، په حقیقت کی دپو لینډ د بهر نی سیاســت بنسټو نه ټاکلی دی .

دپولینډ دکار ګرانو د متحد ګوند تر مشری لاندی ،دپو- لینډ کارګرانو ، بز ګرانو،او رو ښانفکرانو پخپل هیوادکی سو سیا لیستی نو ی ټو لنه جوړه کړی ده . په اوســـ وخت کی دد غه هیـــواد ۳۷ میلیو نه او سیدو نکی د خپل هیواد دتاریخ په ډیرو ښـــو شرایطو کی یو نو ی ژو نـد تجر به کوی .

د بور ژوازی تــــړون‌د ګټو داجرا په‌پایله کی،ددواړو هیوادو د خلکو تر منځ‌ددو - ستی او ورور ګلو ی احساس له‌بل هر وخت څخه زیا ت ټینګ شو ی دی . په اوس وخت کی ددواړو هیوادو دکار خانو ،پو هنتو نونو ، صنفی اتحادیو ، د ځوا نانو سازما- نونو او نورو ټو لنیزومؤسسو ترمنځ اړ یکی او مستقیمـی مرستی شتبه دی .

دمار کسیزم -لنینیزم‌اودپرو- لتار یا اصو لو تــه دد واړو هیوادو دسیا سی ګو ندو نو ګډ باور ددی سبب شو ی‌دی چی ددواړو ګو ند ونو منا - سبات د ورور ګلو یزو اړ یکو په لوړه سطحه کی وساتـل شـ ی‌او پرا ختیا ومو می .په او س وخت کی د سو لی‌لپاره دامپر یالیستی تیر ی دسیاـ ست پر خلاف پیاو ړی مبارزه چی نړی په هسته یی نا تار سره تر ګوا بن لا ندی‌نیسی یوله مهمو عواملو څخه دی‌چی وروڼه‌سوسیا لستی هیوادو - نه یی په یوه متحده .لیکه کی سره‌یو مو ټی کړ ی دی .دوار- ساپه تړون کی دپو لینډ او شورو ی اتحاد پیو ند چی د دواړ وهیوادو د ورو رګلو‌یزو همکاریو د لو ړی دو جی څر- ګندو ی‌دی ، نه یواز ی‌ددواړو هیوادو د ملتو نو د ګټو پـه لاره کی عمل کو ی ، بلکی‌په عین حال کی‌د سو لی په‌سا- تنی او دیو ی اتو می جګړی په مخنیوی کی چی د نـړی دټولو خلکو ګډ کار دی ارز- ښتنتا که برخه تر سره کوی.

ناظرحسین



د کابل لرغونی ښار دتاریخ په اوږدو کې د سترو پېښو شاهد دی .
په همدغه ښار کې و چې دهیواد خلکو اوریښتینو بچیانو دانګلیس دښکیلاګرو پرضدوسله وال پاڅون ته پــراخ سازمان ورکړ .
دثور د پر تمین انقلاب دبریا لیتوب د ګلو نو په اوږدو کې چې د هغه هر کال زموږ دخلکو په ژوند کې دبې‌ساری او ژورو بد لونونو پیل دی.د ښار بڼې د عصری اومدرنو ودانیو په جوړولو سره‌بدلون کړیدی. او همدا راز زمـــوږ انقلابی دولت دتاریخی‌لرغونو ودانیو سا تنی او تر میم ته‌جدی پاملر نه لری .

# دعلم او جهل څلی

د بریکو ټ د نو آباد پــه سیمه کې یو څلی شتــه دی چې د علم او جهل د څلی په نا مه یادیږی دغه څلـــی د امان الله خان په وخت کـي د ۱۳۰۳ کال د جوزا په ۲۳ جوړ شوی چې د هیواد دهغو زړورو .او میړ نیو بچیا نـــو چې د ګوډ ملا پر ضد ( هغه څوک چې د اما ني غور ځنګ پر ضد یې اړودوړ کړی و ) و جنګیدل او خپل ځانونه‌یی قر با نی کړی دی د یاد ګار په تو ګه جوړ شوی دی .

د څلي په‌کتیبه کې‌لیکل‌شویدی.

((د هیواد دزړورو بچیانو او د ملت د غیر تمنو میړنیو د ارزښتنا کو سر ښند نـــو له مخې چې د جنو بی سیمی د اړو دوړ کوو نکو جا هلانو په جګړه کې چې په حقیقت کې د علم او جهل یوه مقابله وه چې په ۱۳۰۳ لمر یـــز هجری سنه د افغا نستان د تر قی غو ښتو نکی پادشاه او د افغان ملت د حا مـــی اعلیحضرت الغازی ( امیـــر امان الله خان) د سلطنت په وخت کی د ملی لوړ والی او د علم او تمدن د اعتلا پـــه وړا ندې پیښه شوه، د سر غړوونکو اشرارو په ځپلو او د بد مر غو ګمرا ها نو پـــه جګړه او د هغو د با طلـــو ارادو په لری کو لو کی یـــی زیار ایستلی د همـــت او اسلامی غیرت چیغه یی‌اوچته کړه او د خپل سپیڅلـــی او اولو الامر د رضا او د هیواد د پر مختګو نو په لاره کی‌یی خپل ځا نو نه قر بان کـــړی او د ځان له پاره یی همیشنی ژوند او تاریخی ښه نـــوم حا صل کړ، دغه نیکمر غه‌او ویاړلی یاد ګار د۱۳۰٤لمریز کال د جوزا په ۲۳ نیټه جوړ شو څو دهیواد را تلو نکـــی بچیان د حقا نیت د لاری د سر ښندو نکو هیواد پا لنـــه او معارف غو ښتنه دستاینی او ویاړنی په نظر وګوری او د هغوی اولادونو ته درناوی وکړی او د افغان حـــق پا لو او حسا سو خلکو تـــه دویاړنی‌ستره سرلوحه وی .

د ((رهنمای کا بل)) لــه کتاب څخه

●

ټکونه، غوښتنې، انتقادونه

# دشبرغان دکوکګنبد او سیدونکو غوښتنې

**دثور دانقلاب‌حقیقت محترمی اداری ته !**

دکـوک‌ګنبد کلي دجو زجان ولایت مر کز د شبر غان ښار په دری کیلو متری کې پروت دی چې څه دپاسه زر تنه‌پکې ژوند کو ی .د.ا.خ.د. ګ.اود افغا نستان ددمو کرا تیـــک جمهوری دو لت په پاملر نه دګو ندی لومړی ساز مان تر ځنګ دکر نی کو پرا تیفو نه او ټو لنیز ساز ما نونه جو ړ او څر ګنده وده یی کړی ده.

دکوك ګنبد په کلی کی دنجونو او هلکا نو له‌پاره دوه ښوونځی (لیسه او لومړ نـــی) جوړ او فعا ل شوی دی چې‌په مجموعی ډول څه‌دپاسه (٦٩٠) تنه زده کوو نکی پەمختلـــط ډول پکی‌زده کړه کو ی.دثور دپر تمین انقلاب دبر یا لیتوب له پیل څخه تر اوسه پور ی دهیواد پالو ځوا نانو اودمدا فعینو د ډلو داتلوا ل فعالیت له‌امله دنو مو ړو ښوو نځیو ددرسو نو جریان له نیکه‌مرغه دیو ی ور ځی له پاره هـــم ندی ځنډ یدلی .

دکوك ګنبد خلـــکو زیاتره زیار کښ بز ګران او کارګران دی .د انقلاب ل ه‌بریا لیتو ب څخه تر اوسه ، موږ دانقلا ب دمدا فعینو د ډلی په لیکه کی په پیوستو ن سره ، دانقلاب له سترو ار زښتو نو اوزموږ دګران ستر ګو ند دا.خ.د.ګ دارما نونو د تحقق په خاطـــر پیاو ړی مور چلو نه جوړ‌کړی او دخلکو دپت، عزت اوناموس دښمنا نو ته مو د عبرت درس ورکړی دی . په او سنیو شرایطو کی پخپل کلی او نورو ګاو نډ یو کلیو کی دامنیت په ټینګښت سره‌زموږ خلك په‌خو ښی او آرامی په یو ه‌لاس کی‌یو م او په بـــل لاس کی یی وسله د کرنـــی‌د محصو لا تو په زیا تو‌ا لی‌کی په‌کر کیله لګیا دی.

دکو ك ګنبد دکلي اوسیدونکی په دی انتظار کی دی‌چی دانقلاب له ار زښتو نواونعمت څخه زیاته استفاده و کړی .د بزګری کو پرا تیف زیاته وده او پراختیا و کړی ، زمـــوږ انقلابي دو لت ه راړ خیزی مرستي لاپسی زیاتي شی ،نو پیشنهاد کوو چي :

۱ـد ښوو نځیو ،جومات ټو لنیزو سا زما نونو ، دکار ګرانو او بز ګرانو دکورو نو دروښنا نه کو لو په منظوردی دبریښنا مزی تر کلي پور ی وغزول شی .

۲ـ داوړی‌په‌فصل کی دا.ـ وبو د کموالی له کبله زموږ کښنت سبو زی او زموږ ټو ل زیار خاور ی کیږی . هیله ده چی‌څو ژوری څا ګانی وکیندل شی اودواټر پمپ تر اینبودلو وروسته دی دکرو ند ګرو په واك ک ی‌ور کړ ل شی .

۳ـ په شبر غان کی طبـی درمل پ ه‌ډیره لوړه بیه پلورل کیږی ، هیله ده چی دګـران پلورلو مخه ونیو ل شی .

که څه هم پور تنی ستونزی پەګو ندی او دو لتی غونـډو کی دمر کزدلیږ لشوو استازو دلیدنو کتنو په وخت کی څوځلی طر حه او پیشنهـاد شوی دی خو نتیجه یی تـــر اوسه پوری نده رار سید لی. هیله لرو چی زموږ دپیشنهاد په خپرو لو سره دکانــو او صنا یعو وزار ت ،د کر نـــی وزار ت ، د عامی رو غتیـــا وزار ت لاز می آسا نتیا وی برابر ی او زموږ ستو نزی لری کړی. په در نـــا وی

**د کوپراتیف مسوول محمـــد شریف او د جوزجان د کوك ګنبد دکلی بزګـران او او ـ سیدونکی ر حمـــت اله، سید ارسلان ، محمـد رســـول، محم مرحیم ، صالـــح محمد، حاجی امام قل ، حاجی‌اسماـ عیل ، حاجی دوست محمد ، یارمحمد ، فیض محمد، حاجی سلیمان قل، محمدامین، عبد‌ـ الحنان ، نور محمد، سیدعلی عبدالعزیز ، جلال ، حاجـــی نذیر او محمد قل .**

# دوطن په دښتو غرو کې

سری جنډی د شهیدا نوترینه‌پور ته سره اورو نه
چې افق یی رنګ کی‌سوردی ، دی حیرا ن ورته‌وختونه
دسرو ستو رو په ځ لاکـــی‌دغیرت وینه په جوش ده
دسپو ږمی په‌مخ‌کی جوړدی‌دشهید و سنګرو نه
سره ګو ګل پ ه‌مخنلا شین‌دی ، دی شهید دانقلاب نن
ترینه ـښ په درناوی شی‌داسمان ستر تندر ونه
لږ زوی راو ینښو ی لا د دی ځمکی په رګو کی
د هیواد د ښیراز ی نن‌سترموجونه ، طوفانونه

* * *

سری جنډی د شهیدا نـــود آزا دژ وند ښنا نی دی
په مستی یی نن راو ستــی‌داو یدی شان زمانی دی
لمسو ی زړونه سینو کی دژوند نوی قر باني ته
نوی دم دمسیحادی دژوندنوی قا فلی دی
غږ دمست ساز اوریده شی‌دو طن په دښتو غرو کی
خمار مست ، میخا نی‌مستی‌ډکی پیما نی دی
نو ی زیر ی لور د لوری‌دمرام درسید و دی
چی‌په کور د ظالمانو بیاورګډی زلزلی دی

* * *

سری جنډی د شهیدا نـــوستری هیلی ډ رو ند و نشی
تری به جوړ په پرګنو کی‌پیوستو ن شی اوهم یو نشی
چی تر اوسه یی فضا کی د بری غږ انګازی کړی
دهغو ملالو پیغلو دننګونوبه‌مضمو ن شی
دجهان په کور به ګډه‌هنګا مه‌دنوی ژو ند کړی
داجهان به په بل رنګـــ شی‌که‌دنوی ژوند پاڅون‌شی
پیر زوینه ، ورور ولی به‌شی پیدا په ټول جهان کی
یودبل نه به زا ریږی په‌یو زړه به‌ هر بدلون شی

* * *

سری جنډی د شهیدا نــوراشی ښکل یی په لیمو کړو
لاتر سره په خپل ژو ندکی‌ددوی ښکلی شان آرزو کړو
دغه پور دانقلا ب دشهیدانو په‌هر چا دی
چی نړی یو مخی خلاصه لــه‌جګړی او له غمو کړو
سوله، کار سره یو ځـــای کړو دپتمن ژوند ون دپاره
ښه آرام ژو ند ون پیدا هم‌ټل دخپل کار په خولو کړو
دا آرزو د شهیدا نو چـــی‌دی «سو له ټل ژوندی وی»
راشی دا آرزو تر سره په‌فضا، ځمکه ،او بو کړو

سمیع الله سمیع
۲٤ـ۷ـ۱۳٦۳ هـ . ش کال ـ کابل

# زموږ له پلرنی هیواد څخه



په‌عکس: دعلم اوجهل څلـــی

# خبرې او موسکا

# ملغلرې

انسا ن هغه وخت کو لـــی شی چی هو ســـا او ډاډه وی چی په پت، عدالت او همت کی ژوند وکړی .

سقراط

ښکلا حقیقت دی او حقیقت ښکلا .

جان کیتس

* * *

یو لیکوال هغه وخت‌ادیب کیږی چی پاك او روښا نـــه ولیکی .

ژون روناد

* * *

غچ هغه یوا ځنی پور دی چی ور کړه یی غلطه ده .

کا فیشن

* * *

هغه څه چی پـــه تور زړو کسانو کی خورا لږ مو نـــدل کیږی حقیقت لیدو نکی سترګی او له حقیقت خوښو نـــی سره مینه ده .

لوند

# ازلـــی لوبـــه

نامتو سندر غاړ ی فدور شلیا پین کله چی ۱۵ کلن و یـــوه ورځ دکاز انو په ښار کی‌موـ زیکال تیاتر ته‌ور غی چی دی پخپلو ډله ییزو سندرغـــاړو کی ومنی . کله چی دنوموړی آواز واز مایل شو .هغه‌یـــی ونه مانه او له هغه ځایه څخه یی وشاړه . کلونه تیرشول اونو مو ړی یو مشهور سندر غاړ ی‌شو . یوه ور ځ نوموړی ماکسیم ګور کی ته کیســـه وکړه . ما کیسیم ګور کی په لوړه وخندل او هغه څه چی‌په هماغه وخت کی او په هماغه تیاترکی پرده تیر شـــو ی‌و وویل :

ـاو په هماغه وخت کی‌زه هماغه تیاتر ته ور غلم زه‌یی په خوښی سره و منلم. ورو ـ سته زه پخپله یوه شو م‌چی نه اواز لرم او نه دسندروو یلو استعداد ، ز ومی لیکوا لـــی غوره کړه : **دنورا نی ژباړه**

# کیســـه

یوه ورځ می په لاره کـــی‌سخت څغاستلی و . اومانیمام دیوی غونډی په لمنه‌کی‌ستړی‌پریوتم یو سپین ږیـــری ...

بوډا راغی اوویی ویـــل څه‌جنس یی چی دویده‌کیدولپاره ځای نه‌لری ومی ویل : دتللومتره په پښوکی نه لرم . ویی

ویل : ندی دی اورید لی چی‌ولی دی :

له څغا ستی اوتپه دریدوڅخه تلل ا و کښیناستـــل غوره دی .

اس دخه شیبی لـــه پاره‌ګړندی څغلی اوښ ورو ورو خو سپه او ورځ درومی .



بې له شرحې

# ټوکــی

لومړی تـــن : ښه سندره چیری اوریدلای شو ؟

دویم تن : د«نویوسندرو»! دخپرونو پرته، په هرځای‌کی.

* * *

لومړی : تر اوسه موواده نه دی کړی ؟

دویم : نه !

لومړی : ولی ؟

دویم : په روحی ازموینوکی می سل نمری ترلاسه‌کړیدی.



په عکس کی : د عد لیـــی وزارت د ماشوم په خو نه‌کی دوه ننه ماشومان‌لیدل کیږی. دث. ا.ح عکا سی

دتحریر سیأت تر نظــر لاندی
مسوول مدیر : صدیق کاوون

تیلفـونـونه
مسوول مدیر : ۲۱۰٤۱ اداری : ۲۱۹٤۱ پستی صندوق : ۷۸۰
سوچبورد : ۲۱۰٤۲ ۲۱۰٤۳ ۲۲٤۷٤
ویش اوشکایتونه : ۲۲۸۵۹ بانکی حساب : ۱۰۱۸پر۹
دیوی ګڼی بیه «۲» افغانی
د دولتی مطبعی دویب آفسیت چاپ